# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان


مولوي ذبیح‌الله مجاهد:

## یرغلګر دې د افغانستان له تاریخه عبرت واخلي

د افغانستان اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح‌الله مجاهد د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره د سلواغې ۲۶مه د افغانستان په تاریخ کې یوه له ویاړه ډکه او د الله ج د شکر ورځ بللې ده. ښاغلي مجاهد ویلي، چې د پخواني شوروي اتحاد په وراندې



د ټولو افغانانو او مسلمانانو جهاد، مبارزې، قرباني، هجرتونه او تکلیفونه د دې سبب شول، چې د وخت شوري قوت مات او له دې خاورې یې وباسي. د اسلامي امارت ویاند دغه راز ویلي، چې د تېرو څه باندې سلو کلونو له پرلپسې ... ۳مخ


د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٨٣ ګڼه / شنبه ١٦ شعبان‌المعظم ١٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۲۷مه ۱۴۰۳ هـ.ش / ۱۵ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


در راستای حمایت از رسانه‌ها؛

# آغاز فعالیت ۳۳ رادیو طی ۳ سال در کشور



وزارت اطلاعات و فرهنگ می‌گوید، پس از حاکمیت امارت اسلامی ۳۳ دستگاه رادیویی از این وزارت جواز نشراتی بدست آورده‌اند.

حبیب غفران، سخنگوی این وزارت این آمار را در یک کلیپ ویدیویی بیان کرده است.

آقای غفران که این ویدیو را به مناسبت ۱۳ فبروری، روز جهانی رادیو نشر کرده می‌گوید، در مجموع در حال حاضر ۲۳۴ دستگاه رادیویی در کشور فعالیت دارد. ص۳

## د لوګر امنیتي وضعیت د داد وړ بلل شوی




د امنیتي او تصفیوي چارو مرکزي کمېسیون غړي او د چارو اداري مرستیال مولوي سیف‌الدین تائب په مشرۍ یوه پلاوي لوګر ته سفر کړی دی.

امنیتي او تصفیوي ... ۳مخ

## برای نخستین بار شفاخانه ۲۰۰ بستر تداوی سرطان در افغانستان به فعالیت آغاز می کند



وزارت صحت عامه می‌گوید، قرار است برای نخستین‌بار شفاخانه‌ای به ظرفیت دوصد بستر برای تداوی مریضان مبتلا به سرطان در کشور به فعالیت آغاز کند.

به گفته وزارت صحت عامه، مولوی نورجلال جلالی، سرپرست این وزارت از جریان کار ساختمان شفاخانه... ص۳

## هلمند کې لسګونه پوځي وسایط رغول شوي



د هلمند د مقام دفتر ویلي چې ۲۱۵ عزم قول اردو په دویمې پلې منصوري لواء کې د تخنیک آمریت د مسلکي پرسونل په هڅو په تېرو شپږو میاشتو کې ۶۵ بېلابېل پوځي وسایط تر بیارغونې وروسته کټې اخیستنو ته سپارل شوي دي.

په دغو وسایطو کې ۳۰ رینجر، ۱۷ هاموې ټانکونه، ... ۳مخ



## سرمقاله

## افغان ولس دې له بهرنیو یرغلونو عبرت واخلي!

پرون د جمعې ورځ د دلوې ۲۶مه نېټه له افغانستانه د شوروي ځواکونو د وتلو ورځ وه. د شوروي یرغلګرو ځواکونو وروستۍ جوپه تر نه(۹) کاله او پنځوسو ورځو جنګ جګړو او بې ساري وحشت او تباهۍ وروسته د(۱۳۶۷) هجري شمسي کال د دلوې په شپږویشتمه ورځ زموږ له هېواده ووتله چې اوس یې دادی شپږ دېرش کاله پوره شول. البته دانو یوازې د شوروي یرغل نه دی چې افغانان یې د راتلو تورې او د بېرته وتلو سپینې ورځې یادښت وکړي، بلکې موږ فقط په یوه پېړۍ کې له دریو همداسې یرغلونو سره مخ شوي او زښته ډېر کړېدلي یو. موږ په (۱۲۹۸)هـ ش کې له انګرېزانو، (۱۳۶۷)هـ ش کې له شورویانو او (۱۴۰۰)هـ ش کې له امریکایانو ځان خلاص او د خپل کور بشپړ مالکیت تر لاسه کړ، ځکه خو اوس په کار ده چې افغانان خپل ګرېوان ته سر ښکته او ژور فکر وکړي چې ترڅو به دا تورې او سپینې ورځې یادوي او د خپلو شهیدانو فاتحې به اخلي؟ ولې هر وخت د پردي یرغل ښکار ګرځي او ولې دومره وهل خوري؟ ایا رښتیا زموږ هېواد همدومره له سرو او سپینو ډک دی چې له هرې خوا لاسونه ورغځېږي او که نه ګناه خپله په موږ کې ده چې نوې زمانه کې د ژوند کولو په چل نه پوهېږو یا دا چې ښایي خاینان، غداران او وطن پلورونکي مو ډېر دي چې په ډېره ناچیزه دانه پردۍ لومه کې نښلي، د خپل هېواد سودا ورسره کوي او د غلامۍ ځنځیر یې پر غاړه وري. وړاندې نه ځو نه ډېر وخت لګوو، یوازې د همدغې یوې پېړۍ د دریو یرغلونو عوامل څېړو او ګورو چې اصلي حقیقت څه دی؟ ایا په ړومبي یرغل کې کورنیو لانجو کې ګیرشاه شجاع د پرنګي یرغل لپاره وضعیت برابر نه کړ؟ ایا په دویم یرغل کې افغاني کمونیستان له شوروي ځواکونو سره یو ځای اوږه پر اوږه راغلي او ورسره ولاړ نه وو؟ ایا په دریم یرغل کې د شمالي ټلوالې مشرانو د صلیبیانو دروازو ته کچکول نه ونیولي، ایا را تشویق یې نه کړل، خپل کور، کلي کې یې ځای او مرکز ور نه کړ او بیایې ترشلو کلو پورې ښه په اخلاص د مېړنیو افغانانو په نیولو او وژلو کې بشپړه ملګرتیا ورسره ونه کړه؟ پر ته له شکه دا ټول هغه ... ۳مخ

## خوست کې د دوو دښمنو کورنیو روغه جوړه وشوه



د خوست امنیه قوماندانۍ مطبوعاتي دفتر ویلي چې د اسماعیل خېلو او مندوزیو ولسوالۍ قومي مشرانو په هڅو او د سیمې امنیتي مسؤلینو په همکارۍ یوه بله خونړۍ دښمني پای ته ورسېده.

د خوست امنیه قوماندانۍ اړوند د اسماعیلو او مندوزیو ولسوالۍ امنیتي مسؤلینو له قومي... ۳مخ

## ده‌ها شهروند افغان از زندان‌های پاکستان آزاد شدند



وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان می‌گوید، ۶۳ تن از مهاجرین افغان از زندان‌های پاکستان آزاد شده و به کشور برگشتند.

این وزارت با نشر خبرنامه‌ای از آزادی این تعداد شهروند افغان از زندان‌های پاکستان خبر داده است.

به گفته وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان، اعضای ۴ خانواده شامل ۱۵ عضو و ۴۸ تن دیگر از شهروندان افغان مشمول آزادشدگان هستند.

در خبرنامه آمده که این تعداد از شهروندان افغان پس از رهایی از زندان‌های پاکستان روز گذشته به افغانستان اخراج شده‌اند. ص۳

۲ مخ — د دلوې ۲۶ مه د افغان ولس د بریا او د شوروي یرغلګرو د ماتې ورځ

۳مخ — د کابل مرکزي سیلو د فعالیتونو تاریخچه

۲ مخ — اشغال؛ فکري جګړه او وارداتي ارزښتونه

## لوګر کې ټرافیکي پېښې ۱۰ تنه ټپیان کړي



د لوګر امنیې قوماندانۍ مسئولین وایي چې په یوې ټرافیکي پېښه کې ۱۰ تنه ټپیان شوي دي.

د امنیې قوماندانۍ ویاند مولوي احمد الله انس ویلي چې یاته پېښه د لوګر مرکز اړوند کمبزه سیمه کې د یوې سراچې او پاسو موټر د ټکر له امله رامنځته شوې ده، چې پکې د یوې مېرمنې او یو ماشوم په ګډون ۱۰ تنه ټپیان شوي دي. دغه راز نوموړي زیاته کړه چې ټپیان د لوګر ولایت مرکزي روغتون ته انتقال شوي دي.

## د میدان وردګو له روغتیایي بهیر څخه کتنه وشوه



د میدان وردګو والي قاري بختیار معاذ د عامې روغتیا له وزیر مولوي نور جلال جلالي سره په یاد ولایت کې د روغتیايي خدمتونو په ښه والي او پراختیا لیدنه ترسره کړه.

په دې لیدنه کې د میدان وردګو والي ښاغلي معاذ د عامې روغتیا له وزیر ښاغلي مولوي نور جلال جلالي سره په دغه ولایت کې د ځینو روغتیایي ستونزو د شریکولو ترڅنګ د روغتیایي خدماتو په ښه والي، د دې برخې پراختیا او ستونزو د حل اړوند بحث او خبرې وکړې. ۳مخ

# د دلوې ۲۶ مه د افغان ولس د بریا او د شوروي یرغلګرو د ماتې ورځ

**صابر جان محصل**

د افغانستان ویاړمن تاریخ د قربانیو، زړورتیا او خپلواکۍ غوښتنې له حماسو ډک تاریخ دی. افغانان تل د ازادۍ پر لاره د سترو زبرځواکونو پر وړاندې درېدلي، د خپل دین، ناموس، ارزښتونو او د خاورې د ساتنې لپاره یې نه ستړې کېدونکې مبارزه کړې ده. د دلوې ۲۶مه یا د (فبروري ۱۵مه، ۱۹۸۹م) هم د همدې ملي مقاومت یوه ځلانده پاڼه ده، هغه ورځ چې د شوروي اتحاد یرغلګر ځواکونه له افغانستانه په ټیټو سترګو ووتل او زموږ ملت ته یې د خپلواکۍ یوه بله زرینه بریا ورپه برخه کړه.

د ۱۳۵۸ هـ ش د مرغومي پر شپږمه، شوروي اتحاد پر افغانستان یرغل وکړ، د خلق او پرچم کمونیستي حکومت یې په زور وساته او زموږ خاوره یې د خپلو ګټو لپاره د جګړې ډګر وګرځوله، خو دا یرغل افغانانو ته د منلو نه و. له لومړۍ ورځې څخه، زموږ مؤمن ولس د دې استعماري ښامار پر ضد وسلې ته لاس کړ او د روسانو او د هغوی د ګوډاګیو خلقیانو او پرچمیانو پر وړاندې یې یو نه ماتېدونکی مقاومت پیل کړ.

افغان مجاهدین، چې د دیني عالمانو، روحانیونو او قومي مشرانو په مشرۍ یې د یرغلګرو پر ضد سنګرونه نیولي وو، افغان ولس په خپل ایماني قوت او جذبې سره داسې قربانۍ ورکړې چې د نړۍ تاریخ ورته بېلګه نه لري. د شل لکه (۲ میلیونه) افغانانو سرونه د دې جګړې قرباني شول، خو په قربانیو سره نه تنها دا چې افغانان مات نه شول، بلکې هره ورځ یې پر یرغلګرو بریدونه زیاتېدل، څو یې بالاخره روسان دې ته اړ کړل چې له افغانستانه د وتلو پرېکړه وکړي.

د شوروي اشغال پر مهال، د افغانستان په بېلابېلو سیمو کې خونړۍ جګړې وشوې. د هرات پاڅون (۱۳۵۸)، د کونړ، پکتیا، پنجشیر او کندهار جګړې او د کابل پر سنګرونو بېلابېل بریدونه د مجاهدینو د مقاومت څرګندې بېلګې دي. د افغانانو زړورتیا او سرښندنه وه، چې د نړۍ ستر زبرځواک ته یې تاریخي ماتې ورکړه.

په همدې لړ کې، د روسانو ستر جنګي ماشین ته دروند مالي او بشري زیان واوښت، د هغوی زرګونه سرتېري ووژل شول او پای یې د ۱۳۶۷هـ ش د دلوې په ۲۶مه، خپل وروستی سرتېری له افغانستانه وایست. دا هغه ورځ وه چې د افغانانو له ۱۰ کلنې قربانۍ وروسته د شوروي یرغل ته د پای ټکی کېښودل شو.

د تاریخ پاڼې شاهدې دي چې افغانستان د زبرځواکونو هدیره ده. د شوروي اتحاد ماتې یوازې د روسانو لپاره نه، بلکې د هر استعماري ځواک لپاره یو روښانه پیغام دی چې افغانان غلامي نه مني، د پردیو تپل شوې ایډیالوژي نه مني او هېڅ څوک نه شي کولی چې د افغانانو ازادي سلب کړي.

هر هغه څوک چې د دې خاورې د اشغال خوبویني، باید د مغرور شوروي اتحاد برخلیک ته وګوري. باید پوه شي چې د دې ولس ایماني قوت، د ازادۍ مینه او د خپلواکۍ تنده به هېڅکله ماتې ونه مني. که شوروي اتحاد نن د تاریخ یوه ماتې امپراتوري یادېږي، که برتانوي استعمار دلته سپک شو، که ۲۰۲۱م کال کې بل زبرځواک هم د شرم له دروازې ووت، دا ټول یو حقیقت ثابتوي: چې افغانستان ته راتګ اسانه خو وتل ترې یرغلګرو ته په درانهٔ قیمت او ماتې تمام شوی.

د دلوې ۲۶ یوازې د شوروي یرغل د پای نېټه نه ده، بلکې دا ورځ د هغو ټولو غلامانو، وطن فروشانو او اجیرانو لپاره یو ستر درس او عبرت دی، چې د پردیو په چوپړ کې خپل دین، ناموس او هیواد خرڅوي.

د ګوډاګیو ژوند ذلت او تباهي وي. خلقیان او پرچمیان چې د شوروي یرغلګرو مزدوران وو، فکر یې کاوه چې د روسي ټانکونو په زور به د افغان ولس روح تسخیر کړي. دوی د کمونېزم په نوم، د اسلام، افغاني غیرت او دودیزو ارزښتونو پر ضد جنایتونه وکړل، مګر پایله یې څه شوه؟

د دلوې ۲۶ تمه یې د ذلت او رسوایۍ ورځ شوه.

روسانو دوی یواځې پرېښودل او دوی د کډوالۍ او د ذلت له برخلیک سره مخ شول.

د دلوې ۲۶مه یوازې د افغانستان لپاره نه، بلکې د نړۍ د ټولو آزادو ملتونو لپاره یوه مهمه ورځ ده، چې د آزادۍ، مبارزې او د ظالم پر وړاندې د نه تسلیمېدو ستر درس ورکوي. دا ورځ موږ ته دا راښیي چې که ملتونه په خپل ایمان، توکل او ملي یووالي ولاړ وي، نو هېڅ زبرځواک یې نشي غلام کولی.

دلوې ۲۶مه موږ ته دا درس راکوي، چې خپلواکۍ ته رسېدل ممکن دي، خو ساتل یې تر لاسته راوړلو ډېر مهم دي. افغان ولس باید تل د دې ورځې ارزښت وساتي، د خپلواکۍ اتلان یاد کړي او هېڅکله د پردیو د غلامۍ زنځیرونه و نه مني.

للـه الحمد په هیواد دغه د بریا ورځ داسې مهال لمانځل کېږي چې هېواد مو له بشپړې ازادۍ او د شرعي اسلامي نظام له اقامې برخمن دی.

دا ورځ دې د نړۍ ټولو ازادو ملتونو او خصوصاً افغان غیور ولس ته مبارکه وي.



# اشغال؛ فکري جګړه او وارداتي ارزښتونه

**نجیب‌الله جهادوال / پنځمه برخه**

**د ښځو پر وړاندې د تاوتریخوالي د مخنیوي قانون:**

اشغالګرو د غربي فرهنګ دودولو او د اسلامي او افغاني ارزښتونو د نفي او له منځه وړلو لپاره د اساسي قانون ترڅنګ په عادي قوانینو کې هم لاسوهنې پیل کړې او داسې قوانین یې وضع کړل چې له اسلامي او افغاني ارزښتونو سره په ټکر کې وو. د دغو قوانینو یوه بېلګې هم د ښځو پر وړاندې د تاوتریخوالي مخنیوي قانون دی.

دغه قانون چې د ۱۳۸۲کال اساسي قانون د ۷۹مادې پر بنسټ د ۱۳۸۸کال د چنګاښ په ۱۵مه د وزیرانو شورا د ۱۶شمېرې مصوبې له مخې په څلورو فصلونو او ٤٤مادو کې تسوید او د تصویب لپاره ولسي جرګې ته واستول شو، ډېرې موارد یې لکه د ښځو لپاره د امن کورونه رامنځ ته کول، د نجونو د واده لپاره د ۱۸کلنۍ عمر ټاکل او دا چې نارینه نه‌شي کولی د خپلې ښځې له اجازې پرته دویم، درېیم او څلورم واده وکړي، د اسلامي احکامو سربېره د اساسي قانون له درېیمې مادې «په افغانستان کې هېڅ قانون نه‌شي کولای چې د اسلام د سپېڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي» سره په ټکر کې وو. که څه هم دغه قانون د ولسي جرګې له‌خوا تصویب نه‌شو، خو د محاکمو په‌شمول په ټولو ادارو کې عملاً نافذ وو او د هغه پر بنسټ اجراآت ترسره کېدل. چې دلته د بېلګې په ډول له اسلامي ارزښتونو سره د دغه قانون ځینو متناقضو مواردو ته کتنه کوو:

د پنځمې مادې ۲۱بند: «د مدني قانون د ۸۴ مادې مندرج حکم له رعایت پرته له یوې څخه زیاتو ښځو سره واده تاوتریخوالی ګڼل کېږي». چې دغه بند د نساء سورة درېیم آیت ژباړه: (او که وېرېدئ چې په یتیمانو کې به برابري ونه‌کړئ، نو له دغو ښځو مو چې څه خوښه وي دوه ــ دوه، درې ــ درې او څلور ــ څلور په نکاح کړئ، خو که دارېدئ چې برابري نه‌شئ کولی نو بیا یوه، یا هغه (مینځه) چې تاسو یې مالکان یاست، دا کار دې ته ډېر نږدې دی چې ظلم ونه کړئ) په ټکر کې وه.

همدارنګه درویشتمه ماده: «که څوک خپله ښځه داسې ووهي چې د هغې د جراحت یا معلولیت لامل نه‌شي، په لنډمهاله حبس چې له درېیو میاشتو څخه ډېر نه‌وي، محکومېږي» چې دا هم له قرآني نص سره په ټکر کې ده ( النساء/۳۴) .

ژباړه: او هغه ښځې چې د هغوی د بدخویۍ څخه وېرېږئ نو (لومړی) دوی ته نصیحت وکړئ او که ( په نصیحت سمې نه‌شوې) د خوب ځای یې جلا کړئ (او که په دې هم سمې نه شوې ) ویې وهئ نو که غاړه یې کېښوده نو بیا پرې ( د زیان رسولو لپاره ) لار مه لټوئ باور وکړئ چې الله جل جلاله له پاسه شته چې لوړ او لوی دی .

**د ښځو اړوند بنسټونه**

په افغانستان کې له غربي یرغل مخکې هم د ښځو اړوند ځینو سازمانونو چې ډېری یې له هېواده بهر وو، فعالیتونه درلودل، خو د سپتمبر له پېښې وروسته د میلیونونو ډالرو په لګښت د ښځو حقونو په نوم بېلابېلې پروژې پیل شوې او په دې برخه کې په لسګونو سازمانونه او بنسټونه په دنده وګمارل شول چې ځینې مهم یې په لاندې ډول دي:

د ښځو چارو وزارت: دغه وزارت په ۱۳۸۰کال کې د بن کنفرانس د پرېکړې پربنسټ د لنډمهاله اداري په اډانه کې تشکیل شو چې ظاهراً یې دنده د دولت او د ښځو ترمنځ همغږي، د ښځو مشارکت، وړتیا لوړونه او د هغوی د پوهاوي کچې لوړول وو خو په عمل کې یې تر ډېره د هغو پروژو د تطبیق دنده درلوده چې د اشغالګرو له‌خوا د افغاني کلتور د غربي کولو لپاره دغه ارګان ته ورکول کېدې او « د ښځو وړتیا ورکونې» په نوم لس‌کلن پلان یې په دې برخه کې له ټولو مهمو فعالیتونو څخه وو چې د بېلابېلو غربي مؤسسو په مرسته یې د تطبیق چارې رواني وې.

یاد وزارت د خپل فعالیت په موده کې په زرګونو ځوانې ښځینه ترجمانانې، سکرترانې او کارکوونکې غربي مؤسسو ته معرفي کړې. نو له دې کبله ویلی شو چې د ښځو چارو وزارت په اصل کې د افغان ښځو د بې‌لارۍ او په هغوی کې د لویدیځ فرهنګ د ترویج په موخه جوړ شوی و.

د ښځو عالي شورا: دغه بنسټ د محمد اشرف غني د واکمنۍ پرمهال د نومورې د ۱۳۹۹کال د زمري ۲۲ نېټې د ۵۵ شمېر فرمان پر بنسټ او د اساسي قانون د ۶۴مادې له حکمونو سره سم تأسیس شوه، چې د دارالانشاء چارې یې د ښځو چارو وزارت او د چارو اداري لوی ریاست له‌خوا پر مخ بېول کېدې.

دغه شورا چې خپله لومړۍ غونډه یې د اشرف غني په مشرۍ او د هغه د مېرمن رولاغني په ګډون د ۱۳۹۹کال د کب په ۱۰مه په ارګ کې ترسره کړه، هدف یې ظاهراً په ټولنیزو، اقتصادي، سیاسي، فرهنګي او حقوقي برخو کې د ښځو ستونزو حل وښودل شو.

یادې شورا ۲۶ دایمي غړي لرل چې د ولایتونو ښځینه مرستیالانې، د دولتي ادارو، د ښځو حقونو مدافع بنسټونو، مدني ټولنې او نورو اړوندو ارګانونو استازي پکې شامل وو. دا چې دغه شورا داسې مهال تأسیس شوه چې نظام د سقوط په درشل کې وو، نو د کوم محسوس فعالیت څرک یې هم ونه‌لیدل شو.

**د بشري حقونو کمېسیون:**

دغه بنسټ ظاهراً په هېواد کې د انتقالي عدالت تطبیق په موخه د بن کنفرانس د پرېکړې او د کابل اداري مشر د فرمان پر بنسټ د ۱۳۸۱کال د غبرګولې په ۱۶مه خپل فعالیت پیل کړ او له مرکزي دفتر سربېره یې په ننګرهار، بلخ، هرات، کندهار، بامیان، قندز، ګردیز، بدخشان، دایکندی، فاریاب، هلمند، ارزګان او غور ولایتونو کې هم څانګې درلودې.

که څه هم انتقالي عدالت، ستراتېژیک پروګرام او د عمل پروګرام د دغه کمېسیون درې محوري تګلارې ګڼل کېدې خو د دوو لسیزو فعالیت په ترڅ کې یې ټول تمرکز د ښځو اړوندو فعالیتونو باندې وو او د غربي اصولو پربنسټ د ښځو حقوق او فحشاء، فساد او کورني نظم پاشل کېدو ته د ښځو هڅول یې عمده موخې وې چې د تحقق لپاره یې په میلیونونو ډالر ولګول شول.

ډاکتره سیما سمر چې د ۱۳۸۲ ــ ۱۳۹۸کلونو په ترڅ کې شپاړس کاله د دغه کمېسیون رئیسه وه، د اخلاقي او اداري فساد په‌شمول په بېلابېلو جرمونو تورنه ګڼل کېده.

څرنګه چې د فریدې په نوم یوې افغانۍ نجلۍ د ۲۰۰۹کال د فبرورۍ په لومړۍ له آریانانیوز ټلویزیون سره په مرکه کې وویل، د بې سرپرستۍ او فقر له امله یې د بشري حقونو خپلواک کمېسیون ته مراجعه وکړه خو له څه مودې وروسته د سیما سمر له‌خوا ورته وویل شول چې ستایل او اندام یې د بهرنیانو خوښېږي او باید ځان د هغوی شخصي استفادې ته چمتو او د کورنیو او بهرنیو مېلمنو جنسي اړتیاوې پوره کړي.

د فریدې په وینا، سیما سمر ورته وویل چې دا کوم بد کار نه دی او هره ځوانه نجلۍ حق لري چې آزاد ژوند ولري او له ځوانۍ څخه خوند او مزه واخلي.

له دې سربېره د دغه کمېسیون یو کمېشنر عبدالکریم عزیزي د ۲۰۱۶کال د سپتمبر په ۲۹مه د ولسي جرګې په یوه غونډه کې د یو لړ اسنادو په وړاندې کولو سره سیما سمر په اداري او مالي فساد کې ښکېله وبلله چې ګواکي پرخپل سر خلک پر دندو ګوماري او د افغانستان قوانینو ته درناوی نه‌کوي. له دې وړاندې د ولسي جرګې پخواني غړي نجیب الله کابلي هم پر سیما سمر تور لګولی و، چې د دوه نیم لکه ډالرو په بدل کې یې د جنګي جنایت‌کارانو له لیست څخه د ځینو کسانو نومونه اېستلي دي.

که څه هم له ۱۶کلونو وروسته د پراخو نیوکو له امله بالاخره په ۲۰۱۹کال کې د دغه کمېسیون په رهبري کې بدلون راغی خو بیا یې هم مشري د شهزاد اکبر په نوم یوې ښځې ته وسپارل شوه چې له دې وړاندې د کابل اداري د ملي امنیت شورا مرستیاله وه او د نهو تنو غړو له ډلې څخه یې هم درې تنه ښځې وې(بنفشه یعقوبي، شبنم صالحي او راضیه صیاد).

**د افغان ښځو شبکه(AWN):** دغه نادولتي مؤسسه چې په بیجینګ کې د ملګرو ملتونو د ښځو څلورم نړیوال کنفرانس له جوړېدو وروسته په ۱۹۹۵کال کې له هېواده بهر تأسیس شوه، د کرزي له واکمنۍ سره هم‌مهاله یې په هېواد کې دننه د افغان ښځو پیاوړتیا او د ماشومانو روزنې او پالنې په نوم په پراخه کچه فعالیتونه پیل کړل.

دغه سازمان چې له کابل سربېره یې په هرات او ننګرهار ولایتونو کې هم سیمه‌ییز دفترونه درلودل او د دغو دفترونو له لارې یې په څلور ګاونډ ولایتونو کې خپلې پروژې عملي کولې، د ۸۰ نادولتي سازمانونو استازیتوب کاوو او ۵۰۰۰ غړي یې درلودل.

دغې شبکې د ارتقاء په نوم مجلې، مجهز کتابتون، کتابونو د چاپ او وېش او ویب‌پاڼې له لارې تبلیغات خپرول وو چې اوس هم له هېواده بهر خپلو فعالیتونو ته دوام ورکوي او ډېری تمرکز یې پر دې وو چې د ښځو غربي ماډل حقونه د اسلام دین اصولو سره مطابق خلکو ته معرفي کړي او په دې برخه کې یې د ځینو کرایي ملایانو په ګمارنې سره ډېر کتابونه هم چاپ او خپاره کړل .

د افغان ښځو انقلابي جمعیت (راوا): دغه سازمان لومړی د افغانستان ځغورنې سازمان ( الوا) په نوم فعالیت درلود چې مشر یې د ډاکتر فیض محمد په نوم یو فکري شعله‌یي وو او وروسته یې په ۱۳۵٦کال کې د خپلې مېرمنې ( مینا) په مشرۍ د ښځو څانګه هم فعاله کړه چې د «جمعیت زنان انقلابی افغانستان» (راوا) په نوم یې فعالیت درلود. مینا د خپل مېړه ډاکتر فیض محمد له وژل کېدو وروسته وتوانېده چې د ډېرو بهرنیو هېوادونو پام هم ځان ته راجلب کړي .

هغه مهال دغې ډلې د کمونیستي مائوستي افکارو او د لوېدیځ خلاف تندو شعارونو پرځای خپل فعالیت د اسلام‌پالو ډلو پرضد متمرکز کړ چې د نشریې (پیام زن) مضامین یې هم پر همدې موضوع راڅرخي او د شعله جاوید مشرانو لکه عبدالله رستاخیز (داؤد سرمد)، سیدال سخندان، انیس اذر(بشیر بهمن)، سعیدسلطان‌پور، سیداحمد رهزاد(جولیوس واتل روزنبرګ)، اتونه کاستیلو اړوند مضامین او اشعار خپروي.

دغې ډلې د ۲۰۰۱کال د سپتمبر پېښې وروستي له غربي چارواکو لکه زلمي خلیل زاد او د هغه له مېرمن چریل بنارد( cheryl benard) سره د اړیکو له لارې په افغانستان کې پراخ نفوذ وکړ. دغه مهال د دغه سازمان ځینو غړیو لکه ملالۍ جویا او بقیس روشن د پارلمان څوکۍ هم ترلاسه کړې چې له دغه آدرسه یې د خپلو موخو د تحقق لپاره فعالیت کاوو.

یونیفم (UNIFEM): د ملګرو ملتونو د ښځو پرمختیا صندوق چې د ۲۰۰۷کال په اګست کې یې په افغانستان کې خپل فعالیت پیل کړ، که څه هم دغې مؤسسې د خپل فعالیت هدف له خطر او قربانۍ سره مخ ښځو او نجونو ته د مستقیمو خدماتو وړاندې کول بلل، خو ډېری پروګرامونه یې غربي فرهنګ ته د افغان ښځو پر هڅونې متمرکز وو. دغې ادارې همدارنګه د جنست پر بنسټ تاوتریخوالي مخنیوي برخه کې په دولتي مؤسسو کې د وړتیا لوړولو پروژې هم تطبیقولې کوم چې پایلې یې تر ډېره برعکس وې.

د ملګرو ملتونو د ښځو څانګه(UN Women): دغه اداره چې د ښځو په برخه کې د ملګرو ملتونو یوه نړیواله اداره ده، په ۲۰۱۰کال کې یې د ملګرو ملتونو د عمومي غونډې د پرېکړې پر بنسټ په افغانستان کې فعالیت پیل کړ چې لا هم د ښځو حقونو پیاوړتیا او جنسیتي برابرۍ په نوم یو لړ فعالیتونه ترسره کوي.

**نور بیا...**

# د ولس زړونه همداسې خپلېږي!

**حسان مجاهد**

د حطین له جګړې څو ورځې وړاندې سلطان صلاح الدین ایوبي رح په دمشق کې د پولیسو مشر ( چې په اوس وخت کې د کورنیو چارو له وزیر سره برابر دی) راوغوښت او ورته یې وویل:

اې د پولیسو مشره! خلکو ته غږ وکړه چې هېڅوک د خپل کور دروازه بنده نه کړي او هېڅ سوداګر دې د خپل دوکان دروازه ونه تړي.

د پولیسو افسر په دې غوښتنه حیران شو او هڅه یې وکړه چې سلطان له دې کاره په شا کړي، خو صلاح الدین ورته په ټینګه وویل: هغه څه وکړه چې ما درته امر کړی دی.

اعلان کوونکو چیغې وهلې چې د سلطان حکم خلکو ته ورسوي (په هغه وخت کې د دمشق نفوس له ۱۵۰ زرو څخه زیات و)

بله ورځ سلطان د پولیسو افسر راوغوښت او له هغه څخه یې وغوښتل چې هغه څه بیا تکرار کړي چې تېره شپه یې کړي وو، په درېیمه ورځ یې بیا راوغوښت او له هغه څخه یې وغوښتل چې هغه څه چې تېره شپه یې کړي وو، بیا تکرار کړي څلورمه ورځ یې ترې وپوښتل:

ایا تاسو ته د کومې غلا په اړه راپور درکړل شوی؟ هغه ځواب ورکړ: نه!

دلته صلاح الدین د لښکر قوماندان ته چې په شورا کې وو وویل: اوس د جګړې د پیلولو لپاره عام اعلان وکړه! که ماته د غلا یو خبر راکړل شوی وای، جګړه به مې لس کاله ځنډولې وای.

دا د صلاح الدین ایوبي رح یو تکتیک و، چې خلک یې پر ځان باوري کړل، د هغوی زړونه خپل کړي او په ولس کې مشروعیت ترلاسه کړي، تر څو ولس یې تر څنګ ودرېږي او په هره ستونزه کې اوږه ورکړي.

# د کابل مرکزي سیلو د فعالیتونو تاریخچه

حیات الله حلیم



پخوانیو انسانانو د غلو دانو د اوړولو لپاره د میچنې څخه کار اخیست چې دا د انساني مدنیت لومړنۍ لویه نښه او علامه ګڼل کېدله، همدا میچن وه چې د راتلونکو نسلونو لپاره د فکري انکشاف یوه ښه وسیله وګرځېده ترڅو داسې ژرندې پیدا شوې چې د لاس پرځای د اوبو په انرژۍ ګرځېدې، کنجکاو انسان په ژرندو هم اکتفا ونه کړه او د هغه د دوراني حرکت په لیدو د ماشین د اختراع په فکر کې شو او ورو ورو یو په بل پسې داسې مختلف النوع ماشینونه را منځ ته کړل چې لوړ بشري خدمتونه ترسره کوي، خو که نظر وکړو د لفظي ژور نږدېوالي له امله همدا میچن د ماشین مورګڼلی شو، چې ورو یې پرمختګ وکړ او په نتیجه کې د سیلوګانو په نوم د ژرندو داسې پرمختللي او لوی ماشینونه را منځ ته شول، چې په ۲۴ ساتو کې یې په زرګونو ټنه غنم اوړول او د بشري ارزاقو په برخه کې یې لوړ خدمتونه ترسره کړل.

په افغانستان کې د سیلوګانو د فعالیت او تاریخچې په اړه باید وویل شي، چې له ټولو لومړی په افغانستان کې د کابل او پلخمري سیلوګانې جوړې شوې چې له څه مودې وروسته د هرات، کندهار او مزارشریف کې سیلو ګانې جوړې شوې چې هره یوه یې د غلو دانو د تذخیر بېلا بېل ظرفیتونه لري مثلاً د کابل سیلو د ۵۰ زره ټنه غنمو د ذخیرې ګودام او د پلخمري هغه د ۴۰زره ټنو غنمو د ځایښت ګودام د بلخ سیلو هم د۴۰ زره او همدارنګه د هرات سیلو بیا د ۲۰ زره ټنو غنمو د ساتلو ګنجایش لري، چې د ۲۰ زرو ټنو په ظرفیت د کندهارسیلو د تېرو کور ګډېو جګړو په ترڅ کې تخریب او د اوږدې مودې لپاره پرچاوه پاتې شوې وه، خو له ټولو په لوړ ظرفیت او د هېواد په کچه لومړنۍ سیلو د کابل مرکزي سیلوه ده چې د بنسټ ډبره یې په ۱۳۳۳هجري شمسي کال په اویا زره مترمربع ځمکه کې شوروي اتحاد په مالي مرسته د میرویس میدان او باغ بالا هوټل ترمنځ کېښودل شو او له دوو کالو وروسته یانې په ۱۳۳۵ کال یې په فعالیت پیل وکړ، د کابل سیلو یوه عام المنفعه انتفاعي دولتي تصدي ده چې د غلو دانو په تذخیر برسېره د غنمو پروسس او د اوړو د تولید او ډول ډول ډوډیو پخولو لکه روټ، ناشتاوې، کیک او کلچو د تولید په برخه کې د کابل ښاریانو اړتیاوې پوره کړې او ترڅنګ یې په هر ډول شرایطو کې د روغتونونو، ښوونځیو، پوهنتونو د لیلیو، دولتي ملکي او امنیتي ارګانونو او په تېرو رژیمونو د وسله والو قواوو د منسوبینو د ډوډۍ تابیا نیوله .

د کابل سیلو فعالیت له پیل نه په زړه پورې تسلسل درلود، په دې مانا کله چې هغه په ۱۳۳۵کال په فعالیت پیل وکړ نو په لومړیو کې یې د ۲۰ زره ټنو په ظرفیت په یوه ذخیروي (الیواتور) برسېره په ۲۴ ساتوکې د۶۰ نه تر ۹۰ ټنو پورې د غنمو اوړولو یوه دستګا درلوده او د دې ترڅنګ یې په ۲۴ ساتو کې د ۵۲ ټنه ډول ډول (غنمینو) تولیداتو لکه درې دوله ډوډۍ او کیک کلچو د تولید او پخولو توان درلود او بیا په ۱۳۴۷ کال یې د ګودام ظرفیت ۵۰ زره ټنو ته لوړشو او ورسره جوخت دا وخت دویم نمبر ژرنده هم چې په ۲۴ ساتو کې یې د غنمو اوړولو ظرفیت ۲۰۰ ټنو ته رسېده فعالیت پیل کړ، همدارنګه یې په ۱۳۵۸ کال د ډوډۍ پخولو دویم نمبر فابریکه چې په ۲۴ ساتو کې یې د ۷۰ ټنه ډوډۍ او نورو غنمینو تولیداتو د پخولو توان درلود تهداب ګزاري او په ۱۳۶۰ کال یې په فعالیت پیل وکړ، چې په ۱۳۷۱ کال د کابل مرکزي سیلو د ډوډۍ خورو هېوادوالو په خدمت کې په لاندې ظرفیت تولیدات درلودل.

۱ـ په یوه وخت د ۵۰ زره ټنه غنمو د تذخیر توان او په کال کې د ۱۷۰ زره ټنه غنمو د پروسس عملیه .

۲ـ په کال کې د ۱۷۱ زره ټنه غنمو د اوړولو توان .

۳- په ټولیز ډول په کال کې د ۴۰ زره ټنه ډوډۍ او نورې ناشتاوې او کلچه باب دتولید توان او دا وخت د دې تصدۍ د پرسونل شمېر ۱۸۰۰کسانو ته رسېده او د راکړې ورکړې (سواداګرۍ ) د پیسو حجم یې په ۱۳۷۱ کال ۵/۲ میلیارده افغانیو ته په کال کې رسېده او کلنۍ خالصه ګټه یې ۴۰۰ میلیونه افغانیو ته رسېده پرسونل یې په درېیو شیفتونو کې اته ساعته په تصدۍ کې دنده ترسره کوله .

د ۱۳۷۱کال دوهمه نیمایي د کابل د مرکزي سیلو د تولیداتو وروستی کال و ځکه له دې وروسته د مجاهدینو تر منځ خپل منځي کورګډې جګړې د دې سبب شوې چې د مرکزي سیلو سیستم سره ګډوډ، له نورو دولتي اداراتو سره یې حسابات د اسنادو د سوځېدلو له امله نا تصفیه او دوراني پانګه یې هم له منځه ولاړه دا پېښې د دې سبب شوې چې د مرکزي سیلو د فعالیت په کیفیت کې کمی را منځ ته شي خو د یادونې وړ ده چې په ګوډ مات ډول د کابل مرکزي سیلو بیا هم په ټولو هغو جفاوو چې ورسره وشوې اوس هم ښاریانو ته د کمیشنکارۍ د غرفو له لارې چې د کابل ښار په هره برخه کې موقعیت لري ډوډۍ ، روټ او ناشتاوې رسوي او همدارنګه نورو امارتي اورګانونو لکه روغتونونو د مجاهدینو قرارګا، د پوهنتون لیلیو او د ښوونځیو زده کوونکو ته په خپل وخت سره ډوډۍ رسوي.

## خوست پوهنتون کې ۲ لویې پروژې...

یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې د لوړو زده‌کړو وزارت سرپرست د خپل سفر په ترڅ کې، په شیخ زاید پوهنتون کې د ۱۰،۵ میلیونه افغانیو په لګښت له وارداتي برښنا سره د پوهنتون وصل کولو او د څه باندې ۲۸۰ زره افغانیو په لګښت د پوهنتون عمومي چوک د اوبو فواره او حوض پروژې ګټې اخېستنو ته سپارلې دي.

یاده دې شي، چې شیخ مولوي نداء محمد ندیم خوست ته د خپل سفر په مهال د یاد پوهنتون له تدریسي روغتون څخه لیدنه کړې او د دې پوهنتون مسئولینو ته یې لازمې لارښوونې کړې دي.

## افغان ولس دې له بهرنیو یرغلونو...

ترخه واقعیتونه دي چې اوس یې باید هر وطنپال او با احساسه مسلمان افغان درک او د بیا تکرارېدو د مخنیوي لپاره شپه ورځ فکرو سوچ وکړي. موږ باید دا خبره په یاد ولرو چې د نورو هېوادونو لاندې کولو حرص په هر چا کې ښه ډېر دی، موږ یې هم لرو او زموږ نیکونو هم له اصفهانه تر ډېلې او دکنه ډېرې منډې کړې او ډېر څه تر لاسه کړي وو، که خو باید دومره زده کړو چې که موږ چمتووالی او خپلو متو کې زور نه لرو، نو دښمن هر وخت چمتو او یرغل ته نېغ ولاړ دی او مشران هم وایي له دښمنه غفلت او یا له هغه نه د ترحم هیله کول زښته لوی حماقت دی. پر دې اساس راځئ فکر وکړو چې اخر موږ خو هم انسانان او د نورو غوندې لاس، پښې او ماغزه لرو، چې دوی یرغل کوي، موږ یې ولې نه شو کولی؟ موږ ولې خپل وطن پلورونکي غداران سمولی او ځان کې دومره ځواک نه شو پیدا کولی چې هم د لستوني مارانو او کورنیو دښمنانو ته درس و ادب ورکړو او هم بهرني دښمنان ووېروو؟ راځئ موږ هم لومړۍ د خپلې دفاع او بیا د نورو سیمو د فتوحاتو چل زده کړو.

## یرغلګر دې د افغانستان له تاریخه...

یرغلونو او په مقابل کې یې د جهاد له کامیابۍ څخه باید په راتلونکي کې متجاوز جهتونه عبرت واخلي او د بیا ځل لپاره زموږ د خپلواکۍ او حریت په ضد ګام پورته نه کړي. مولوي ذبیح‌الله مجاهد له ټولو هېوادوالو غوښتي، چې د تېر په څېر په راتلونکي کې هم د هر ډول توطئو او دسیسو په وړاندې بیدار واوسي او د خپل کلک عزم او اسلامي وحدت په ساتلو سره خپلو اسلافو لار تعقیب کړي او خپل دین، عقیده او خپلواکي وساتي.

## د لوګر امنیتي وضعیت د داد وړ...

کمېسیون ویلي، چې یاد پلاوي د خپل سفر په ترڅ کې د لوګر مرستیال والي مولوي محمد انور دین پرور په مشرۍ د ولایتي امنیتي کمېسیون له غړو سره په امنیتي وضعیت مفصلې خبرې کړې دي.

یاده دې شي، چې د دې سفر په پایله کې د لوګر ولایت امنیتي وضعیت د داډ وړ بلل شوی.

د امنیتي او تصفیوي کمېسیون دغه راز زیاته کړې، چې د یاد سفر په لړ کې د لوګر ولایت د مجاهدینو ستونزې اورېدل شوې او د حل په موخه د همکارۍ ډاډ ورکړل شوی دی.

## آغاز فعالیت ۳۳ رادیو در طی ۳...

سخنگوی وزارت اطلاعات و فرهنگ می‌افزاید که این رسانه‌های شنیداری بربنیاد رعایت پالیسی امارت اسلامی و پالیسی نشراتی این وزارت فعالیت دارند.

او تاکید می‌کند که امارت اسلامی و وزارت اطلاعات و فرهنگ متعهد به حمایت از رسانه‌ها به خصوص رادیوهای فعال در کشور است.

گفتنی‌است که ۱۳ فبروری برابر است به روز جهانی رادیو.

## برای نخستین‌بار شفاخانه ۲۰۰ بستر...

تداوی مریضان سرطان دیدن کرده است.

آقای جلالی مریضان مبتلا به سرطان را نیازمند کمک و حمایت دانسته و از توجه ویژه وزارت صحت عامه برای آنان اطمینان داده است.

سرپرست وزارت صحت عامه دیدار از جریان کار شفاخانه سرطان بر اتمام هرچه‌زودتر کار و فعالیت آن تاکید کرده است.

این نخستین‌بار است که در افغانستان شفاخانه‌ای مختص به تداوی سرطان آغاز به فعالیت می‌کند.

## هلمند کې لسګونه پوځي...

۱۳ انټرنیشنل، ۳ هاموې امبولانس او ۲ کرینګ شامل دي.

د یادونې وړ ده، چې تر دې وړاندې هم د یادې لواء په ورکشاپونو کې زیات شمیر پوځي وسایط بیارغېدلي وو.

## ده‌ها شهروند افغان از زندان‌های پاکستان...

وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان گفته که آمریت‌های سرحدی تورخم و سپین‌بولدک دلیل زندانی شدن ۶۳ شهروند افغان را نداشتن اسناد قانونی اقامت در پاکستان گفته‌اند.

پیش از این و در جریان هفته‌جاری نیز ده‌ها شهروند افغان از زندان‌های پاکستان آزاد و به کشور برگشتانده شدند.

## خوست کې د دوو دښمنو کورنیو...

مشرانو سره په ګډو هڅو د همدې ولسوالۍ په دوکانو کلي کې د حمیدالله او حکیم الله کورنیو ترمنځ څلور کلنه دښمني چې یو کس په کې وژل شوی و، د یو لړ خبرو اترو وروسته په روغه او دوستۍ بدله کړه.

بل لورته ښکېلو اړخونو هم له حکومت او منځګړیو سپین ږیرو مننه وکړه چې په خپلو مخلصانه هڅو یې د دوی شخړه ختمه او د دواړو لوریو په کامل رضایت یې غوره پرېکړه ترسره کړه.

## د میدان وردګو له روغتیایي بهیر...

دغه راز د عامې روغتیا وزیر ښاغلي جلالي ټولو هېوادوالو ته د معیاري روغتیایي خدمتونو وړاندې کول د روغتیا وزارت دنده وبلله او په یاد ولایت کې یې د روغتیایي خدمتونو د پراختیا او ستونزو د حل ډاډ څرګند کړ.

## آغاز کار ساخت یک شبکه آبرسانی...

با تکمیل کار ساخت این شبکه آب‌رسانی صحی، زمینه دسترسی بیش از ۴۰۰ خانواده به آب آشامیدنی صحی، فراهم خواهد شد.

وزارت احیاء و انکشاف دهات نگفته که هزینه این پروژه از کدام منبع تامین شده است.

دسترسی به آشامیدنی صحی در افغانستان یکی از معضلات اجتماعی شمرده می‌شود و نهادهای امارتی و غیرامارتی در تلاش اند تا این نیازمندی را تا حد ممکن کاهش دهند.

## د غلام خان بندر د ترافیکي...

د ویلو ده، چې د یادې پروژې چارې د شاوخوا ۹ میلیونو افغانیو په ارزښت تېرو دریو میاشتو کې بشپړې شوې.

# افغان اعلانات

# Shariat Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ /۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Saturday 15 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 683


# خوست پوهنتون کې ۲ لویې پروژې پرانیستل شوې

د لوړو زده‌کړو وزارت سرپرست شیخ مولوي نداء محمد ندیم خوست ته د خپل سفر په ترځ کې یوې لویې غونډې ته د وینا ترڅنګ شیخ زاید پوهنتون کې دوه لویې پروژې پرانیستې دي.

په دې غونډه کې ښاغلي ندیم استادانو ته په خطاب کې وویل: «موږ او تاسو د دې نظام خادمان یوو؛ نو راځئ چې هر یو په خپله برخه کې له زړه خدمت وکړو، په صحیح اسلامي طریقه د دې ملت د بچیانو روزنه وکړو او د علم کیفیت لوړولو کې زیار وباسو.»

۳مخ

## د غلام خان بندر د ټرافیکي خوندیتوب پروژې پیل شوې

د خوست غلام خان بندر ته پر ۲۸ کیلومتره غځېدلي سړک د ترافیکي خوندیتوب پروژې چارې پیل شوې.

د خوست د ټولګټو چارو ریاست مسئولینو له لوري د غلام خان بندر څخه تر فرضي کرښې پورې پر ۲۸ کیلومتره غځېدلي سړک د خط اچونې د ټرافیکي لوحو د نصب او کادرېلونو پروژې پیل شوې.

۳مخ

## د افغانستان او مالیزیا د سوداګرۍ پر پراختیا خبرې وشوې

په مالیزیا کې د افغانستان سفارت سرپرست نقیب‌الله احمدي د کوربه هېواد د کرنې وزارت د زراعتي بازار موندنې فدرالي ادارې له عمومي رییس امین الدین ذولکفلي سره کتلي دي.

یاد سفارت په خپل ایکس پاڼه لیکلي، چې په دې کتنه کې دواړو لوریو د افغانستان او مالیزیا ترمنځ د کرنیزو تولیداتو په برخه کې د سوداګرۍ په پراختیا او ګڼو نورو اړوند موضوعاتو په تړاو خبرې کړي دي.

دغه راز په دې غونډه کې د یاد هېواد د زراعتي بازار موندنې فدرالي ادارې رییس لېوالتیا ښودلې، چې د افغاني تولیداتو په ځانګړې توګه وچه او تازه مېوو ته په دې هېواد کې بازار موندنه وکړي.

په مالیزیا کې د افغانستان سفارت د خبرپاڼې له مخې، د مالیزیا د کرنې وزارت اړوند یادې ادارې ډاډ څرګند کړی چې د داخلي سوداګرو او بهرنیو سوداګرو ترمنځ به د همغږۍ ترڅنګ ګڼو نورو اړوند برخو کې هم اسانتیاوې برابرې کړي.




## آغاز کار ساخت یک شبکه آبرسانی در فراه



کار ساخت یک شبکه آب‌رسانی صحی به ارزش نُه میلیون و هشت‌صدهزار افغانی در مربوطات ولایت فراه آغاز شده است.

به گفته این وزارت، شبکه آب‌رسانی یادشده در مربوطات قریه «لرتی» از بخش‌های مربوط به ولسوالی گلستان ولایت فراه ساخته می‌شود.

ص۳

## ننګرهار کې ۲ ترافیکي پېښې رامنځته شوې



ننګرهار کې په دوو جلا ترافیکي پېښو کې شپږو کسانو ته مرګ ژوبله اوښتې ده.

ویل کېږي چې لومړۍ پېښه په بهسودو ولسوالۍ کې رامنځته شوې چې ۴ تنه یې ټپیان کړي او بله پېښه د جلال آباد ښار اړوند سراچې پله سره رامنځته شوې چې یو کس په کې مړ او بل ټپي شوی دی.

ولایتي چارواکو ویلي، چې د دواړو پېښو لامل بې احتیاطي او د موټرو چټکه چلونه ده.

## پکتیکا کې څه باندې ۲ زره اړمنو کورنیو ته خوراکي توکي ووېشل شول




د پکتیکا د کلیو، بیارغونې او پراختیا ریاست وایي، چې په دې ولایت کې له ۲ زره او ۷۵۹ اړمنو کورنیو سره د خوراکي توکو مرسته شوې ده. په یادو مرستو کې هرې کورنۍ ته ۵۰ کیلو اوړه ۵ لیټره غوړي او ۶ کیلیو دال وېشل شوي دي. یاده دې شي، چې دغه مرسته د نړیوال خوراکي پرګرام (ډبیلوایف‌پي) او د «اراېچ‌ډي‌او» مؤسسې په مالي همکارۍ سره ترسره شوې ده.



# نړۍ څار

## اردوغان د یوه پلاوي په مشرۍ اسلام اباد ته رسېدلی



د پاکستاني رسنیو د راپور له مخې، د ترکیې ولسمشر رجب طیب اردوغان، د یوه لوړپوړي پلاوي او ددې هېواد د لومړۍ مېرمنې په ګډون په دوه ورځیني رسمي سفر پاکستان ته رسېدلی.

د پاکستاني رسنیو د راپورونو له مخې، اردوغان به په دې سفر کې د پاکستان له لومړي وزیر شهباز شریف او ولسمشر اصف علي زرداري سره بېلابېلې غونډې ولري. شهباز شریف او ولسمشر اردوغان به د پاک-ترکیې د لوړې کچې ستراتیژیکې همکارۍ شورا اوومې غونډې مشري په ګډه وکړي. داسې ویل کېږي چې انقره ـ اسلام اباد به د همکارۍ او دوه اړخیزو اړیکو ګڼ سندونه هم لاسلیک کړي.

د پاکستان لومړي وزیر شهباز شریف په یوه بیان کې ویلي، چې د ولسمشر اردوغان په دې تاریخي سفر کې هیله من یوو چې دا اړیکې نورې هم پیاوړې شي.

اردوغان وروسته له هغه اسلام اباد ته رسېږي چې تازه امریکا اسلام اباد کې خپلو اتباعو ته خبر ورکړ چې د فیصل جومات شاوخوا سیمو ته دې نه ځي.

## حمایت بریتانیا، آلمان و ایتالیا از اوکراین



بربنیاد گزارش‌ها، سه کشور اروپایی و غیر اروپایی از جمله بریتانیا، ایتالیا و آلمان بر حمایت بیشتر این اتحادیه از اوکراین تأکید کرده‌اند.

بربنیاد گزارش، این کشورها با صدور بیانیه‌ای مشترک آمادگی‌شان را بر ادامه حمایت از اوکراین و تقویت کی‌یف در گفت‌وگوهای صلح این کشور میان امریکا و روسیه اعلام کرده‌اند.

این سه کشور تأکید کرده‌اند، تا زمانی که صلح عادلانه در اوکراین برقرار شود حاضر به ادامه حمایت از کی‌یف و همکاری با این کشور هستند .

اظهارات سه کشور اروپایی و غیراروپایی بر حمایت از اوکراین در حالی ابراز شده که رهبران امریکا و روسیه روز گذشته برای توقف جنگ در این کشور گفت‌وگوی طولانی از طریق تیلفون داشته‌اند.

دونالد و ولادیمیر پوتین توافق کرده‌اند که برای گفت‌وگو در مورد جنگ اوکراین در آینده از نزدیک دیدار کنند.

## د منځني ختیځ د کړکېچ په اړه د پوتین او ټرمپ خبرې

د روسیې ولسمشر ولادیمیر پوتین او د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د اوکراین د جګړې د پای ته رسولو په اړه ټیلیفوني خبرې کړې دي.

د روسیې دولتي خبري اژانس «تاس» لیکلي پوتین ټرمپ ته مسکو ته د راتګ بلنه ورکړې ده. دغو دوو سیالانو لا دمخه له یو بل سره د کتنې خبر ورکړی و.

د کرملین ویاند دیمیتري پسکوف هم ویلي چې پوتین او ټرمپ د منځني ختیځ د وضعیت، دوه اړخیزو اړیکو او د بندیانو د تبادلې په تړاو خبرې کړي دي.

یاده دې شي چې ډونالډ ټرمپ د لوړې په لومړۍ ورځ ویلي و چې د اوکراین او مسکو جګړې ته به د پای ټکی ږدي. نوموړي همدارنګه په تازه څرګندونو کې ویلي، له اوکراینه به ټول هغه لګښتونه واخلي، چې پخوا ورکول شوي وو.

